# دنړیوالو سندرې

## مفتاح الدّین "صافي"

خطاطي او ډیزاین: د محمد آصف "آلف" اثر

# د نړیوالو  سندرې




د قومونو او قبایلو چارو د وزارت د تبلیغاتو او نشراتو ریاست ویاړي چې گرانو لوستونکو، د شعر، ادب او هنري نړۍ د شاهکارونو مینه والو ته د «نړیوالو سندرې» په نامه د مفتاح الدین صافي د ژباړه شوو شعرونو او دده د شعرونو او ادبي متونو ظریفه مجموعه وړاندې کوي .

د شعر دنیا ډېره پراخه ده او د نړۍ هر اولس او هر هیواد خلک ځانته د ډېر شعر او ادب ځانگړې خواوې او باریکۍ لري، په شعر کې ډېر ملي خصوصیات، جغرافیایي



محیط ، ټولنیز حالت ، تاریخ او د ژوندانه نور تیاره اړخونه په ډیره نازک خیالۍ ، لطافت او خوږو کلماتو سره جوتوي . د بشري ټولنې ډیر شاهکارونه ، داتلانو یاد ، ملي حماسې ، ملي ویاړنې او افتخارات ، د ظلم او بربریت غندنې او د مظلومانو آواز همیشه د شعر په لفافه کې څرګند والی موندلی دی . د بیلګې په توګه د زړه د کارګرانو او زیارکښانو نړیوال سرود « انټرناسیونال » او د هرهیواد ملي سرودونه چې د ویاړنو او حیاتي پېښو په وخت کې غږول کیږي زموږ د دغې ینګړي وینا بښه مصداق بلل کیږي .

شاعران او د هنر د تخلیقي دنیا اتلان هرې ټولنې ته د ستري ملي پانګې خاصیت لري او دا د ټولنې هغه ځانګړتیا ده چې وربانډې ویاړ کوي . شعر ویوونکي د شعر د مینانو لپاره په ټوله نړۍ کې پوښان دي او د احساس قدرې کوي ، که دا د افریقا د وچې زوریدلی شاعر دی او که د اروپا د پانګې او انحصاراتو د « سالار » د ځبېر د او مزمن استثمار ځخه ستړی شوی شاعر دی ، که د آسیا د راپاریدلی اولسونو

شاعردی اوکه دلاتیني امریکې دګیتار په بم نغموکې ازادی غوښتونکی متحرک اواحساس لرونکی شاعردی ، دا متول سره ګډا حساس څرګندوي ، نژادی ، ملی ، ژبنیزي ، جغرافیائی او دمتولینزو نظامونو پولې او دیوالونه یې سره جلا کولای نشي .

شعر د شاعر د زړه انساني احساس دی چې داولس د ژبې په خوږو او ښکلو کلماتو کې وړاندې کیږي ، هرڅوک شاعر کیدلای نه شي او دا هغه فطرتي او طبعي استعداد دی چې انسان ته ورپه برخه کیږي . که له یوې خوا د شعر ویل ځانګړي استعداد غواړي نو له بلې خوا په شعر پوهیدل او بیا له هغه ژباړنه د بل اولس د شاعر له ژبې څخه هم پوره استعداد غواړي . شاعر د شاعر احساس درک کوي او همدا وجه ده چې د شعر د ژباړنې صلاحیت هم هرڅوک نه لري .

مفتاح الدین صافی دیکوالو او شاعرانو د اتحادیې د رییسه هیأت غړی ژموږ د هیواد پښتو ژبې لیکوال او شاعر دی چې ده د نړیوالو سندرې په مجموعه یې ترتیب کړې ده . په دغه مجموعه کې





د نړۍ د بېلابېلو اولسونو د څېنو اتلو او قهرمانو شاعرانو چې نړيوال شهرت لري شعرونه دلته ژباړل شوېدي. که دلته د وېتنام د قهرمان اولس د واقعي ژوندي هوچي من شعر دی او که د موزمبيق د اولس د شاعر شعر دی، که د الجزاير د شاعر د شعر نمونه او که د ژاله ښکلي او رنګين احساس دی، که د روسي ژبي د شعر شاهکار دی او که د بلغاريايي شاعر د لمر پرستاينه ده په دغه مجموعه کې د پښتو په خوږو ادبي کلماتو کې د نمونې په ډول ژباړل شويدي.

د مفتاح الدين صافي ادبي ذوق او شعرونه هم د ادب د نړۍ د مينه والو تنده ماتوي. په دې مجموعه کې هغه شعرونه چې د ژوندانه د بېلابېلو اړخونو په هکله ليکل شوېدي د پښتو ژبي د ادبياتو او شعرونو خوښوونکو او مينه والو ته وړاندې کېږي.

په دغو شعرونو کې شاعر په ډېرو ادبي کلمو او الفاظو کې زمونږ د ټولنې د وګړو ژوند ته توجه کړې ده او د هغه رياليستيکه تابلوې ترسيم کړې ده. د بېلګې په ډول « د ژمي دوږخ » تر عنوان لاندې د شعر په ټوټه کې چې

د انقلاب څخه ترمخه ليکل شويدي مطلب ته ښه څرګندلای شو . د «مور» تر عنوان لاندې شعر کې شاعر د ژوند کړاوونه انځور کړي او د راتلونکي زېري يې د رياليستيک او پتيميزم ښه بېلګه ده .

«قهرمان شهيد شه !» تر عنوان لاندې شاعر د انقلاب د لارې د شهيد چې د مور سترګې يې لا تراوسه ورپسې په ژړا سرې دي د قهرمانۍ او قربانۍ ستر ياد تازه کړی دی او هغه د لوی ارمان لپاره يې خپل ټينګ هود او کلکه اراده څرګنده کړې ده . که د دغې مجموعې د ټولو خواوو د څېړلو څخه تېر شو په لنډه توګه ددې يادونه کولای شو چې «د نړيوالو سندرې» هغه کوچنۍ او ښکلې مجموعه ده چې د لمړي ځل لپاره د يوه شاعر د شعرونو او شعري ژباړنو په توګه نشر ته سپارل کيږي او زموږ د ادبياتو او هنر زېرمه غنې کوي .

بريالي دې وي د هنر او ادب د نړۍ اتلان

پوهنمل سرور ماموند
د نشراتو او تبليغاتو رييس

شاعر : ژاله

# انتظار

سبز لېسرلی هم په نغړانده تېر شه
پاڼې ژېړې ګلو راغي ، له بوټو ورژیدل
هغه ګلان چې ستا په یاد مې کرل
ترې جوړ داونکو امیل له سترګو وڅڅیدل
د فراق عمر ورځو له ډېر
که چیرې و دې نه ما ، و به مې نه پېژنې
که لیونی غندې سر په بیابان یمه زه
مه دریابېږه ته ، ما به په حق و ګڼې



شاعر : ژاله

# قطبي ستوری

یه! قطبیه ستوریه!
یې په ځیر له ځېلوریه!
زه سوزېږم او ته خاندې
سره رڼايي ، زړګی نه باندې
زه د زړګي بلېدونکي شغله
ته د آسمان یو ځلیدونکی زره
څه ګټه ستا له دې زړه وړونکي ښکلا
که ونه سوزې ، څپونه کړې رڼا
ارزښت د ژوند دې څه دی ؟
چې په کې نشته هیڅ درد
نه ارمانونه په کې ، نه هدف من نبرد

زه چېل لښد وچکی عمر
ستا په زړو نوقرنو
نه درکوم پوه شه
نه بدلوم پوه شه
نه یم سره لګنه
بلکه توده توده
پرما ځلیږه مه نور
ماته ځیرکیږه نور
زه دسور اور سپرغۍ
نه داسمان ستورګی



# که سعوي دې وپوښتي

که چیري ورته دپوښتي :
« پر شعر سر بیره، راتلونکي نسل ته دي څه پرېښوستي دي ؟

او :

څه دي کړي دي، ؟
آيا دعمر گردي شپې - ورځې دي خوشې او په خانتماتيري کړې ؟

دي تپوس ته به داسې ځواب ورکړم :
ټول عمر مې له خلکو سره مينه درلوده
او ټول عمر مې زيار گالونکي بشريت ستايلي دي .
د خلکو مينه زما دتن وينه او زما دکار سا ده

خکه زه هم انسان يم
او دانسانيت دستر ټول
غړي يم .



# سره نغمه

که تورلوګی شې ، په هواکې پلن او د باد په څپو کې
ورک شې
نو هیڅ نه یې . د پېکه ژوند سره نغمه یې
نه اکه ته اورې
هسک ته نیغ شه
وسوزه ، په لویې اوبرم کې سره لمبه شه
رڼا شه
د توفان بریښنا شه
ګرمي شه ، تودوخې خپره کړه
که د سّـدیزې ایرو لاندې سکروټه شې
مړه به شې
هېره به شې
او هیڅ نښه ، نښانه به دې پاتې نشي .



دموزنبیق یوشاعر:




زما دمور بغه ستومانه غږ
چاخپه کړ.
زما غوږ ته نور هر سهار نه راسي
لا رمواورېده، ده
اوږدي لاري نغاړه
نور دمور غږ نه اورېدل کېږي
آه! پوه شوم، پوه شوم
دمخه بنې وروستۍ غږ وه
دهغې په خوږو سترګو کې
دهغې په ستړي غږ کې
دبې اسرې ژوندلنډۍ دي
اې افريقا، زما موري وطنه
وواېه:
زما مور څه شوه
زما د پلار هديره چېرته ده
ولې په خپل کور کې، بې کوره يم.

شاعر : هوچي من

# پردیس

لومړی چرګ غږ دی ، شپه لا پاته ده
سپوږمې دختیز غرونو له څټ څخه راختلې ده
دستورو په ملګرتیا کې
هغه داوږده یون پرګر به رهی دی
سره وږمه چلیږي
او دهغه پرمخ سړې څپې ځغلي



دختیز زیربنا اوس سور بخنه ښکاري
دشپې سیوري اوږدې لمنې راټغبتې دي
او دګهیځ خوږه تودوخې خپریږي
پردیس په ټینګ هوډ دخپل هدف پرلور ګامونه اخلي
شاعر هم دلمر رڼو وړانګو له اوږده خوب نه راویښ کړیدی .





شاعر : تی هان (له ویتنامږخه)

# دمني سره مخه ښه

سپوږمۍ دافق سرته راختلې ده
او مونږ یوله بله جلا کیږو
دوچو پاڼو خش خش دی
دپاڼو تر شنه رنګ، طلایي رنګ زیات دی
دمني پدی زړه وړونکی طبیعت کی
له تاسره وګرځیدم
خو دنورو له کبله
له تاسره دومره ونه غږیدم
دشپې په امه شمه کی کورته ستون شوم
ښکلی سپوږمۍ تاغندی په رڼو سترګو راته کتل

## د یوه الجزائري شاعر شعر

د شپې له پلوه دې زمونږ کلی لیدلی که یه ؟
د شپې په زړه کی
په بې نوره سترګو
له سترګو څخه د قهر بڅری تویوي



هغه لویه ماڼۍ دې لیدلې که یه ؟
د لمر په څیر روڼ څراغونه یې ځلیږي
خو رڼایي
کنډوالو ته
تورتمو کوڅو ته
ویجاړو خونو
او
ورستو باندونه
هیڅکله نه رسي .



شاعر: هوچي‌من



میره د پولادیو لښتو د ننه او ننجه د باندي
یو بل ته ګوري. هغوی یو بل ته ډیر لنډ دي
یوازي یو څو لوېشتي واټن دي، خو په حقیقت
کي سره ډیر لري دي. ځمکه او آسمان توپیر
دي. هیڅ نوای، یو بل ته په تجنوسترګو ګوري.
رېلي او ښکي يي پر زيړه و مړاوګو نو کښته توييږي،
دی غمجن مجلس ته څوک نه ټینګیږي



شاعر: هوچي من

# شپه راځي

ستړې مرغۍ په بوټو کې د هوساینې ځای لټوي.
پاس د اسمان پر تور ټټر یوه ټوټه ځانګړې
ورېځ په بېړه بې پایه لار نغاړي. لرې هلته
په غرني کلي کې ښغیله انجلۍ میچنې کوي. په نغري
کې اور بلېږي، سرې لمبې يې له ورايه ښکاري.



شاعر: هوچي من

# د پښتې شپیلۍ

ناڅاپه د شپیلۍ خوا بزه اواز غوږونه راوتخنول. اوازې ډېر غمجن او سوو سانده وته ورته وه. د غرونو ترشا، سیندونو نه اخوا، زر میله لرې د پردیسي پردې زړه خوږوونکي غم کې، موبز له ورایه یوه ښځه ګورو چې په مسکا ځای پورته خېژي او د چا د راتلو لار څاري.



# دیوه وتینامی شاعر شعر

وار ه سیندونه سرچینی لری - او تولی ونی په ځنګله کی اېښی .

هر انسان د تن او غږو څخه روغ دی

ولی د چا د پلار او مور څخه منکر یږی

هر انسان په یوه کور او کهول کی زیږیدلی دی

نو ولی د دوی شتوالی نه منی ؟

غوږونه لری ، نو ولی نه اوری ؟

سترګی لری نو ولی نه وینی ؟

زړه لری خو ولی احساس نه لری

زموږ ږلپرونه حیری دی ؟



زموږ د نیکونو هدیره چیرته ده ؟



زموږ هیواد پر غلګرو تو تو نو وران

او زموږ ولس پی تالا کړ

نه دښمنی او ثروت پسی ځغلی

او لوید یز تالا نګرانو زموږ د بخونی او سیرمنی بی سیرته



اومیړونه یې ووژل
نه د طلا او پیسو پسې سر کاوته یې
لو دیز داره ماران راغلل
او زموږ ولس یې وشکوه
موږ یې توهین او ست کړو
څومره یې ووژل او څومره یې غرغره او چارماری کړو
زموږ تاریخ دغه خونړی تیری او لوټ نه شي هیرولی
هر څوک مړی او هیڅوک له مرګ نه ځان نشي ژغورلی
دې پلاریني وطن د خپلواکۍ له پاره مرګ ویاړ او برم لري
هر څوک غواړي چې ژوندو کړي
راځئ چې د خپلواکۍ ژوند په لارکې
سر ونه وشیندو
او د مبارزې او ټینګار
جنډه لکه کړو .



شاعر: تان هی (له ویتنامه)

# دبریدله کربنی واوښتم

بېګاشپه دبریدله کربنی واوښتم
ستالیدلو د پاره، مخ په پیلاب پر یون وم
او زده موده وشوه چی ستا خیال راسره دی
آه، په څه بیړه او لوههٔ کی تللم
دشولو دکر[illegible] غاړه چیټکه روانه وم
دشولو په پسر ته بنګلی او ښین ښکاریده
دبنار له والتونو تیریدم
دغه ته وی ګرانه چی ماله ورایه ولیدی
هو! دغه ته وی، ته وی، ته وی
دغه ته وی، مادر پسی د روحخاشتل
ګرانه و دریږه ما درغږ کړل
دازه یم، لږ تم شه
ته تم شوی

تا له ورایه وپېژندم
هغه د سل زړه انځونو په منځ کې
زه ستا پام ځانته را اړولی شم
ستا په غېږ کې
په زړه غوټۍ غوړېږي وویل:
پوره پنځه کاله وا اوښتل
تا د مینې په غېږ کې راټینګه کړم
غوښتل مې خپل د ګڼ زړه تا ته پېش کړم
تا د پښلونو
د ګلي اوسېمې په باب له مانه تپوس وکړ
آه! تېر کلونه څومره په زړه پورې وو
تا ته خپل رنګونه څرګنده را وسپړم
تا زما مړوند ته لاس را اوږد کړ
هغه مړوند چې تا به تل پرې خپل سر ایښووده
تا له نولۍ نه ناڅاپه کړېکه کړه او ودې پوښتل

ستا مړوند ولې غوڅ دی ؟
چا پرې کړېدی ؟

مادرته دویل :
د اګرو کلونه ستا په لغړاندې تېر شول
دښمن ته ولاړ نه شوم
بل مېړه کول مې ونه منل
له تا تېرېدل راته ګران کاروه
غلیم ښکار او بندي کړم
داد غلیم کار دی چې زما مړوندیې
هلته چې به تا سر پرې ایښود ه له جړ نه پرې کړ
زما ستوني و نښته
یوازې او ښکو زما درد غلی کوه
ما خپل سر ستا په سینه کې پټ کړ
او دردونه مې را وپارېدل
له کوم ځای نه د چړګ غږ شه

له خوبه راویښ شوم
ته په خوب کې راته راغلې وې
زما زړه ستا له یادونو ډک دی
له تالا شوي سوهیل نه
پوهېږې اغلیه!
هره شپه تا په خوب کې وینم
او زما زړه هم هره شپه د برید له کرښې تا پسې دراوړي.





شاعر : هوی کان (له ویتنام څخه)

# د ژوند سندره

ای زما مینې! که څه هم زه غواړم چې سل کلنې ته ورسیږم
خو نه غواړم چې د لوټ دې تاټکي په څېر چې له ځوړتیا نه و مرم
ژوند خورا ښکلی دی، ای زما محبوبې!
له ژوند سره، د ژوند تر پایه مینه لرم
او له پخوانه راته ډیر عزیز دی
د کړاو له سره سره چې پر مخ کې راته جولې جولې پرانه دی
نا هیلی نه یم او د چرګ غږ ته چې د سهر د راتلو زیری کوي ستر ګې پرانیزم
د ژوند سره د ډیرې مینې له کبله آیا کولی شم چې چوپ کښینم؟
زه چې د ژوند ور دوسته چمکنه له ځانه ایسته غورځوم
څرنګه کولای شم چې د ژوندانه تیر کلونه هیر کړم
د ژوند سره مینه زما غوښې او هډوکې دی
زما زړه د تروو او بو سمندر دی
زما د تن پوستکي د ژوند د مالګې نه روغ دی



ترخه غمونه زمونږ د هیواد ورځنۍ چارې دي
د ژوند کاروان په چټکۍ ځغلي
دلته وخت تللی دی
د زاړه کال اخیرنۍ شپه ده
د اسمان ستورې راټولېږي
او د نوي کال تیارې نیسي
په ټوله نړۍ کې د زوړ کال انجام ته رسي
زما د خپل یون سره هر څه بدلوي
زمونږ سفر اوږد دی
خو زمونږ د زیار او مجادلې
الغښتې مې د ېرې غښتلې دي
د ژوند پر کروندې نوي زړې راټولېږي
او پر زړو خزان راځي
زمونږ عمر د نوي انسان عمر دی
مې د ژوند پر نوي متره سمبال دی .



دیوروسی شاعرشعر

# پسرلی

پسرلی د ژمي له خوبه راکښیناست
لکه شاعر چې له خوبه راکښیني

له واره
د تنکۍ ګیاه تر غوان لاندې په کار پیل شه
د مست سین تر څنګ
وخت ته سترګي پرلار
په ولوله او غلبله کې
د هاند په زور
له ګړنګونو او کږلیچونو ور اوښت
او مخه خلاصه لارې بیا ومونده
له ځانه سره وبوګنیده
هر څه نوی او تنکي دي
دلته او هلته دلمر په زرینو وړانګو یې
د ګیاه سنده ښکل کړه

خړ غره ونه او سپېره غونډې يې راويښ كړل
پر ښنو بوټو او رنګارنګ ګلانو يې
د ځمكې مخ لكه ناوې سينګار كړ
د ځنګلونو، پسلونو او ښنو چمنونو پر پالنوی
د پرخې ځلانده څاڅكي ور وشيندل
او پر دې بدول يې خپل كار ته دوام وركړ



شاعر : هوپ من



# لوړې څوکې

سپینې وریځې د غره لوړې څوکې په غیږ کې رانیولې دي
ښکته بهاند سیند لکه هنداره داسې ځلیږي
کله چې د لوړو غرو نو هسکو څوکو
او د ښیلي اسمان نیلي غاړې وته
له ورایه گورم زړه مې له هیلو ډک
او ستړو یې ژبن ارمانونه راپه زړه شي





شاعر : هوچي من

# نښان

نه ډېر لوړې او نه ډېر لرې
نه ستر واکمن يې او نه هم لوی پاسوال
يوازې يو لارښود نښان يې
د لوی لارې پر سر ولاړ يې
لارويو ته لارې ښيې
د لارې سمه خوا په ګوته کوې
او لاروي د لار ورکيدو نه ژغورې
ته هغوی ته د واټن اندازه لګوې
هغه چې د هغوی يون ته لا پاتې دی
ستا زمنه کوچنۍ نده
د خلکو په زړه کې ځای لرې
تا تیره همیشه لرې
او تل تا یاد دی

شاعر: دوښرن ګامبوژف (له مغولستان څخه)

# د مینې ژړوښا

هلکه !

کله د کوهي پر سر ... ولیده

دهغې سره مې د ښاروو په اوبولو کی مرسته وکړه

ما غوښتل چې ورته ووایم «دله تا سره مینه لرم»

خو له ځانه سره وبوګیدم او پوالیه دا خبره خولې ته راغله

«د پلار دې څرنګ دی؟»

که ما هغې ته د خپل زړه پټ راز ونه ښو ویلای

خو هغې ته مې په زړه د سترګو کتل

او که څه هم په هغې کې مې د مینې احساس ونه لیده

خو د کرکې نښې هم پکې نه وې



هلته !

لکه لرې په بېدیاکې مې ولیدله
دهغې سره مې د لرګیو په راټولولو کې مرسته وکړه
ماغوښتل چې ورته ووایم «پر ما ګرانې»
خو له ځانه سره وبوګنېدم او بیا که دا خبره له خولې راووتله
«مور دې څنګه ده» ؟
که څه هم ماهغې ته د خپلې مینې په باب څه و نه ویل
خو تقریباً ورته و مې خندل
او که څه هم زما د خندا ځواب یې رانه کړ
خو دغرور او قهر نښې هم یې نه وې



هلته !

هغه مې د هغې په کور کې ولیدله
په ډېر ځیر یې د خپلو وېښتانو غوټه پرانیستله
ماغوښتل چې ورته ووایم «ستا د وېښتانو عطر پر ما ښه لګي»



نو ناڅاپه سره وبوګېندم او ایله هې ورته وویل شول
«د ګلې وروردې ځنګه دي»؟
ناڅاپه هغې وخندل
او وه یې ویل:
هغه ښه دي او له هغه کوچنی هم ښه دی
له حیا یې سترګې کښته واچولې
او په دې وخت کې ما کتل چې د هغې سترګې له مینې ډکې برېښیدې



دیوه بلغاریائي شاعر .شعر



یه لمړه ،لږ الیشلرشه !

څکه :

دشپې راتلو ته چمتو نه یم

زما سترګې ورځ لا تر او سه نده لیدلې

زه لا د خپل ضمیر سره له شخړې نه یم وزګار شوی

تو له دی کبله د آرام حق نه لرم

ما محمد غزا او س

دشنو بوټو او خړو بریو سره خپلې خبرې پیل کړې

زما ورځ لا پاتې ده

او ته مې ګراره ته ارباسې

ته دغرو نو ترشا ورو . ورو پریوزې



او خپلې ورو ستې وړانګې د ځان پسې راکاږي
لږ ځنډ شه ، موقع راکړه
پرېږده پدې پوه شم
چې ستا په ناآرامه بڼه کې
څومره آرام موجود دی
څنګه چې نا ارامي د ضمير په ماناده
ضمير هم د وړځې مانا ورکوي
نو ته اې لمره
لږ انتظار شه !



شاعر : ګزرن دیو (له وینام څخه)

# سندره

دغره له څوکی څخه یوی توتی ملچکی وریځ سرا ایسته کړیدی
دغره پرسر لپسته وېزمه چلیږی
دشپیلی خوږ آواز دلته را رسی
څنګه چی دونو څانګو پرېماندوریلوا دبوټان کوږ کړیدی
زه اوته هم هماغسی دمینی په ناڅرګنده رسی تړل شوی یو
دشپیلی آواز دیوه خوږ من زړه آواز دی
لکه کاڼی سخت دی او لکه دمین زړه نرم
غرونو خپل سرونه اسمان ته نیغ کړیدی
زما زړه ستا دمینی سندری بولی

او ستا آیینه نه مړیږي

دشپیلې غږ، خوږ او پوست لړزیږي

چارچاپیره ژوند نغمه نغمه دی

خو اخوږی طبیعت انسان ته د ښیښې پیتاوزونه راپیچي

زما خوښې ستا دیدن او ستا مینه زما سندره ده .





«هو چي من»

# جیل

تن دی په جیل کې دی
خوار وادی
دیستر بشری ارمان له پاره
هیڅوک
هیڅکله
د جیلخانې په تورو دیوالونو کې
نشي ایسارولی

پریږده !
اروادی !
پاس
د هسک پر لور
والوزي
او
بېده راویښ کړي

"هوچې مې"

# ګل غوټۍ

ګل غوټۍ ګل شي
چې وغوړیږي
خزان پرې راشي
بیا ور ژیړیږي
خوراکه یي
دلته راسي
بندیان سوزیږي
دلته کمیږي



شاعر : الفريک

الفريک يو انګليس شاعر دی چي د غه لاندي شعر يې د ۱۰۳۰ عيسوي کال په شاو خوا کي ويلی دی .

# درويو نقش

زموږ په نړۍ کي يو کوچنی څيز دی
چي بادشاهان ور ته سر ټيټوي
بدا يان يې عبوديت کوي
نوم يې روپۍ ده
زاړه او واړه د واړه يې درناوی کوي

• • •

پاپان ، شاهان او امپراطوران
روحانيون ، راهبان د خانقا مشران
کشيشان ، پادريان ، شواليان

دیوکان ، اشراف او رونان
تول پي شپه او ورځ خدمت کوي
هم پرې جنت اخیستل کیږي او هم دوزخ
پرتولو نورو څیزونو برسیره
مینه ، محبت
شرف او پت هم پرې اخیستل کیږي
په نړۍ ستر مقام لري
هر څه کولای شي
بیوزلان ترې بې برخه دي
له کومه ځایه را پیدا کیږي ؟

شاعر : روبرت کراولي (۱۵۱۸-۱۵۸۸)

کراولي په خپل وخت کې یو مشهور اجتماعي رفورمیست وه ، په خپلو شعرونو ، بیانیو او ادبي پارچو کې د سرمایه دارانو او فیودالانو د شخصي گټو انساني ضد حرص او آز افشا کړي او د هغوی ظلم او تیري په کارگرانو او دهقانانو سخت غندلي دي .

تازموز زیارکښان
وشکول ، وو دي لوټل ، خرڅ دي کړل او بیا دې واخیستل
تا زموز سري دیني بې ارزښته وبولل
طلاؤ ته دې سجده وکړه
او دغه ، ته تیري نه بولې
یه ! بې رحمه لیوه ، بې عاطفه موجوده
زماله دوزخه لرې گرځه !

اې د طلا بنده !
تازموز له بدمرغۍ نه

ځانته نیکمرغي جوړه کړه !

تا زموږ ولږه ، !

خوښوی او خندوی دی !

زموږ د زیار ګالونکو ویني

ستا په رګونو کې ګرځي

ستا لاسونه

زموږ په وینو سره دي !

دغه سرې ویني

دغه ترمې اوښکې

به یوه ورځ سیلاو شي

او تا به ډوب کړي !

دغه له دردونو او غمونو ډک اوسیلي

دغه ستا د لاسه د خوریدلو ، کړیدلو د زړه تاو

به یوه ورځ اور شي

او تا به وسوزوي !

# د پلوشې

# شعرونه

# او

# ادبي پارچې

# د ژمي ورځ

ږمي ورځ ده، سيلۍ الوتي
وريځ پلنه شوي، خپره شوي
خړې تړمې دنيايه غېز کې
بشپړ نيولي، ورځ تړخه شوي

★ ★

خاوري خېزلي، دوري بادونه
پر ځمکه رغمي وار خپېزونه
آسمان بل شوي، توفاني شوي
واوري کوي پرمخ وارونه

★ ★

توره شپه جوړه، ليوني بيري
ماتم جوړه کړي، ډارا چوتي
ډېښتي بدې هر چاوځلي
د هوا غوټي يخني نيولي

★ ★

د پښو دوړو پر بېخ کو ګل
د بخوا یوه مور په ستمیدو ده
ما شوم یې ځیل کا ورسره نه ځي
دغې رنځور ته په تمیدو ده

★ ★

پېسه تری غواړي په پښو دی وهي
خت یې شلیدلی په تن برېښدی
یو بل ته ګوري، غمجنې او ښکې
پر مخ بهیږي، مجلس یې لنډی

★ ★

د باد څپو ته بې پناه پاتې
غوږني توي شوي، هډوکي ریږدي
د پلیو لورته، په تمنا کې
لاس غزولی، غوږني یې ریږدي

★ ★

اخوا مو تر د خپل سر کټ پر مټر
سیلی ځیری نیغ په ورانده روان
په تو ده غیږ کې یې نازولی سپاره
ټوکې خندا کوي ، بې پروا له طوفان

* *

دراد یو غیږ ترینه بهراځی
هره خوا ښیچی د سیلی په وزر
ذیکمرغی او تنعم په غیږ کې
ندی دژوند د کړا و لو خبر

* *

د یخوا ته مرګ ، اخوا ته ژوند غوړیږی
دژوندون راز پټ کی له دراپه ښکاری
دژوند ښادی ونا ښاد یو په بیه
نصیب د هغه ده ، همی یی واره چاری

کابل جدی ۱۳۵۵

# پدې لارکې

تا د مینې په اور سوزم
تل کړېږم
تل رنځېږم
نه مې مینې
نه مې تن یې
نه مې سا ئې ...
ستا په عشق کې کله غورځم
کله پرځم ...
نه بېرېږم له هیڅ پېښې
پروانه لرم له چا

ترڅو تا تر لاسه نه کړم
ناکرار یم
لالهاند یم
پر خپل هود باندې ولاړ یم

ستا د مینې په اور سوزم
ستا د مینې په تور تور یم
نه دارېږم
لکه غر هسې ولاړ یم
پدې لارکې نخورم ماتې

# کاشکی

کاشکی دواړه سره مله وای
فراق نوای
بیلتون نوای
بس تا ته می کتلای
مسکیدلای
خوښیدلای
ته کاشکی دیوه وای
په تورتم کی لګیدلای
او زه لکه پتنګ
ستا په مینه سوزیدلای
ته لکه سور ګل وای
په وږمو کی رپیدلای
زه لکه بلبل تری چاپیره چغیدلای
کاشکی ته ستوری وای

آسمان کې ځلیدلای
چې ستا په ننداره کې
په دیدن خوموړیدلای
کاشکې ستا شونډې
د شرابو سره پیاله وای
چې ما په بې صبرۍ
او په مستۍ کې ښکلولای
کاشکې ته د مین زړه وای
چې پر حال مې خبریدلای
ما در ته ژړلای
او تا سینې پورې نیولای

کابل جدی ۱۳۵۵

زما مينې !
په خوږې مينې !
در پسې خورم د زړګي وينې !
بېلتانه غېږ کې
زمانه زغمې
په ځنډ تېرېږي
روح مې کمېږي
تن مې ځوريږي
له ډيره غمه سترګې مې سپينې
ګرانې مېينې
څومره دې غوارم
تا پسې ژاړم
که زما نشې
بيا نو ژوندځه دی
مرګ به د غوارم

د ژوند تر ګمې کې
زما ډيوه يې
بله لمبه يې
ځنا دې ګيږده
ځان ته مې پرېږده
نور مې مه سپېره
د زړه ګسره يې

کابل حوت ۱۳۵۵

د یاد دنو په نړۍ کې
ستا تصویر تر سترګو کېږي
خوږې هیلې شي راغبرګې
زړه ژړېږي
نه صبرېږي



کاشکې تل سره یو ځای وای
زه دې تن وای
ته مې ساه وای
وس د چا نه بریدلای
پولادي مینې
توته وای !





کابل حوت ۱۳۵۵

# لیرې شئ . . . !

شئ
لیرې خندونو

له مخ لیرې شئ !

ورک شئ !

مخنوړن شئ !

نور مې ډېر مه څوروئ !

هیسته شئ !

زماله مخې هیسته شئ !

پرېمېږدئ آشناته

نور مې ډېر مه کړوئ !

ستاسې په هستئ کې نوی بېلتون زغملی نه شمه !

خوار شئ !

په خپل ځان شئ !

نور مې ډېر مه تړنوئ !



پرېږدې چې خپل د ګټ زړه ورته یوسمه په ورانډې
تش يې کړم په چيغو
په ژړا او په زاریو
وسپړم د زړه رازونه
ټول ورته په مخ کې
هغه چې تر او سه مې ساتلي په خواريو
وه یې لړځوم
بیده احساس یې را بیدار کړم
وصل کې یې ډوب شم
هم سبا دې یې په ښادیو

کابل سنبله ۱۳۵۶

# مور

دساره لغړی پرغاړه
دویرونو ده لتاړه
توری شپې
توری وزری
غوړو لی لړو بری



یوه مور ناسته ده ژړیږی
او بنکو ځاځکی تری بهیږی
له کومه ځایه ورته غږ کښه
راوچت دنیز له خوږ ښه
مه کړ ساندی !
توره شپه په تیریدو ده
په وتو ده
ورکیدو ده
سپیده چاوده وخت راږدی دی
رڼا ګهیځ هم ورپسی دی

کابل ثور ۱۳۵۶

دخاورین سرک پر غاړه
پنډو دوړو په طوفان کې
دګیږدیو نه راډیخوا
دغوندیو په لمن کې
څنګیدلمه پرلاره
اندیښنو او ناکراره



دخیالو نو سمندر مې
دوبولم
غرقولم
په خپل خان کې ورک شوی
ناخبره بل هر چاپه
چې له ښت را بانډې غږ شه
شوه دسوچ نړۍ مې ورانه
که کتل مې
زمامینه
ځلیدله
بلیدله
مسکیدله
خندیدله

کابل سنبله ۱۳۵٦

# خوب

ای خوبه، خوبه، د آشنا خوبه
له تا دي ځار سم
ته خوږ جهان یې
ښکلی زمان یې
ته را پرېباسې
له ټول بندېزونه
ځېرزه خندونه
لوړ دېوالونه
په تاکې تل کړم د مینې لوبه !



ستا د اُفق
پرستر ګوګل
ورو، ورو خوځېږي
سپینه سپوږمي ده
ښکلې ځلېږي

په مینه، مینه
راته مسکېږې

په بیره، بیره
پسې ورځغلم
کله پاڅېږم
او کله رغړم

خپلې سینې ته
راټینګوم يې
په ښکلولو کې

ډوبوم يې
د مینې تنده پرې کړم خړوبه

کابل جدی ١٣٥٦

دی فضا تنګه سینه کی
زړه می تنګ دی
سا می تنګه



دغه حال را باندی اوردی
سوزی وی می
غموی می
ارام نشته، نه یی غواړم
چی وطن می ناارام دی
چی ساطور لاندی می خلک
نول ست کیږی
وژل کیږی
چی ملګری می په جیل کی
شهیدیږی
تعذیبیږی

چی کوچنیان می د وطن
ازاریږي، تومینیږي



دا مین خونړی باند
دا د ننګ ناموس دښمن
دا غلیم د شرافت
دا د عرب ځنځیري سپی
پرخلاف ئې زړه د جنګیږم
طوفانونو کې لوبیږم
یوه لحظه به ارام نشم
که می سر له تنی پری شي
تر څو غځه به لاس و اخلم
ترڅو باند نشي نسکور

مخفیګاه سرطان ۱۳۵۷

# قهرمان شهید شه !

یه سربلنده !
یه پهلوانه !
یه قهرمانه !



تاپسی ژاړی
سپین سری مور دی
په ویر ژړیږی هره یوه خور دی



ورونه دی ژاړی
ماتم دی د روند دی
خپلوان دی ویرکړی
گریوان یی لوند دی



په غم دی ژاړی
داړه ملگری
او ښکو باران دی
له سترګو اوری



یه سربلنده!
یه پهلوانه!
یه قهرمانه!



لاړي شهید شوي
وطن په مینه
وطن ګلګون شه
ستا په سره وینه



ستا لوی ارمان
به ستا ملګري
په سرګټي
کړي سوګند دي
وطن له پاره
قسم یاد کړي
ستا عظیم ګوند دي

کابل دلو ۱۳۵۸

# زیړی

پر هیله، هیله کې را باندې اوږده کلونه واوښتل. ورځې بیګا او شپې سبا شوې، او مخه پر له پسې یوه د بلې پسې لاړه. میاشتې کلونه شول او کلونو هم بې څنده خپله د تګ لاره په مخه کړه.

خو د کلونو پدې اوږده بهیر کې ستا سبنه، نښانه مانه ونه لګیده. ستا هیلې څخه زما د صبر کاسه نوره دومره دکه شوې وه چې هډو بلې هیلې ته په کې هیڅ ځای نه پاتې.

خو اوس، زما د ژوند مخه هیلې یو اړخ ترسره شه، بل اړخ یې ستا سپېڅلې روزنه او پیاوړې انقلابي شخصیت جوړوونه ده.



۴۷ کال، دلوی د میاشتی څورلسمه شپه وه، په درانده
خوب کلک بیده وم چي ناڅاپه یو زغ نیغ په کټ کی کښېنولم.
غوږونه می بل ته پوخ کړل او سا می په سینه کی خپه کړه
چي داوار داسی آواز غوږونه راغی، لالا زیری می در بانده.
هــو ! داستا د زیر زید و زیری وه او زما
د هیلی یوازنی ترسره ښکاریده .

# ای زما عشقه

یوازی ناست یم . سوچ وم ،
د سوچ په ناپایه نړۍ کی د رسپی ابتر
ګرځم . د تصور په بی انتها افق کی دی
لټوم ، هلته د خیال په آسمان کی ،
د ستورو سره یوځای دی ګورم . ښکلی
مخ دی له ورایه وینم او ورته پخسیږم .

# ولي نه راځي؟

ولي نه راځي؟
راځه، راشه
پرتامين يم
زه يوناخوځند منتظر نه يم
ستا د مينې دلبكر سرغندوی يم
داور بخړی يم
او ستا د مينې تاو په سوزونكو لمبا ر ووم
په هيڅ ارنه يم
تا پسې سمه اوغرنه پيژنم
له پيچومواووم
ګرنګونه راته هوارې ښكاري
او په قانونونو کې ستا د مينې سندرې بولم



ولی نه راځي ؟

راځه راشه

داخوره تت هوا پر خپلو زړینو رانګو وسبا نه کړه

پدې ساخپه کوونکې د ژنه ترګمی کې مې نورمه پریږده



ولی نه راځي ؟

راځه راشه

دمینې وزرې دې وغوړوه

غیږ دې پرانیزه

او خپل مین دې د ژوند په خوند سیرازه کړه .